# له تاسو دومره ګیله من یم چې حد نه لري!

ملي شهید ګیله من پښتین

GILAMAN PASHTEEN

ټولونه: اټک یوسفزی

## مننه او کور ودانی

ددې ټولګې د راټولولو او جوړولو په چارو کې له ټولو هغو ملګرو مننداوی یم چې مشورې او ډاډ یې راکړی .په ځانګړي توګه له ګران زلمي سلیمان جان نه مننه کوم چې د شهید ګیله من سره په اړیکه کې و او ددې ټولګې یو شمېر شعرونه یې ورسپارلي وو.

دویم د هېواد له خوږ ژبې هنرمندې او په پښتو مینې مېرمنې اغلې هما افغانمینې نه هم د زړه له تله مننه کوم چې د کتاب مالي لګښت ته یې پخپله خوښه ټټر وواهه او لکه د غورځنګ د تکړه او ژبورې مبارزې خور اغلې پښغلې وړانګې لونی په شان یې دلته د قلم او ادب ذکر پیاوړی کړ او دا ټولګه یې د چاپ په بڼه تر موږ راورسوله

## ، ټرون

ددې ټولګې ټرون او اهدا د شهید عثمان لالا ،
شهید ارمان لوڼي ، شهید عارف وزیر او شهید
ګیله من ، د غیرتي او پښتنو میندو په نوم دی
دا غیرتمندې میندې د ټول پښتون ولس میندې دي
او تاریخ به یې په مېړانو ویاړي

## ، ټړون

ددې ټولګې ټړون او اهدا د شهید عثمان لالا ، شهید ارمان لوڼي ، شهید عارف وزیر او شهید ګیله من ، د غیرتي او پښتنو میندو په نوم دی دا غیرتمندې میندې د ټول پښتون ولس میندې دي او تاریخ به یې په میړانو ویاړي

منظور او د پي ټي ایم ټولو سرتېرو ته ډالۍ
داسې څوک غواړو موږ

چې مو راټول په يو کور کړي داسې څوک غواړو موږ
چې مو زخمونه لږ ټکور کړي داسې څوک غواړو موږ

يو بې وطنه بې کفنه لا وارثه پښتون
که چېرې خلاص نور له پېغور کړي داسې څوک غواړو موږ

چې يو له غر بل له سنګر دربېيم له ټانګه ګوزي کړي
چې مو راټول په يو شکور کړي داسې څوک غواړو موږ

يوه د خير تيره چې کېږدي زموږ دواړو منځ کې
چې مې د ورور سره بيا ورور کړي داسې څوک غواړو موږ



چې مې ټوپک او قلم دواړه په قلم بدل کړي
چې نور له جنګه مو زړه تور کړي داسې څوک غواړو موږ

چې دا د وینو سېلابونه بس دی ودروي
چې سپین د امن خادر خپور کړي داسې څوک غواړو موږ

چې کربښې ړنګې او ملي جذبې راوپاروي
چې ټول ولس په شرنګ او شور کړي داسې څوک غواړو موږ

چې مو تر منځه دا د جبر دېوال ونړوي
چې مو بچي د یوې مور کړي داسې څوک غواړو موږ

چې د پنجاب نه خپله خاوره د اټک وګټي
چې نور اوبه د ظالم زور کړي داسې څوک غواړو موږ
اجمل اټک یوسفزی

## په قام مین ، قام نه خفه ګیله من

د افغانانو او په ځانګړي توګه د پښتنو تاریخ له بدمرغه په سرو وینو لیکل شوی دی خو د تاریخ ټول جنګونه په پښتون قام تپل شوي دي یو جنګ هم داسې نشته چې پښتنو دې په چا لښکر کشي کړې وي او په بل یې یرغل او برید کړی وي . په داسې حال کې چې پښتون یو مېړنی قوم دی ، توره او ټوپک یې ستاینه او زېور دی.

پښتون پښتون وهلی خو په بل یې برید او بلوڅه نه ده کړې . خو د تاریخ جبر په وینو کې لمبولي دي او د شهیدانو هدیرې ، نومونه او جنازې یې له شماره وتې دي .د پښتون د تورې شرنګ د نړۍ والو په تاریخونو کې اوس هم شرنګېږي او د نړۍ امپراتورانو دې قام ته ذوه لاسي سلامي او تسلیمي ورکړې ده ، د نړۍ د هر مادي ستر طاقت ماته او زوال له همدې خړې پړې خاورې پیل شوی دی .لوی سکندر ، مغل ، چنګېز ، ورپسې انګرېز ، روس ، امریک او دوه څلوېښت متحدینو ملګرو هېوادونو یې دلته ګونډه ووهله او مات ګوډ په تېښته بریالي شول .دا ټول په موږ پسې زموږ خاورې ته راغلي دي او موږ یې د سیاسي سیالیو او ګټو قرباني شوي یوو .د هر یرغل پر وړاندې زموږ په زرګونو او لکونو ککرې قرباني شوې دي کورونه مو وران شوي دي ، بچي مو یتیمان

شوي دي مېندې مو بورې شوي دي او خوېندې مو کونډې او
بې کسه شوي دي.
لنډه دا چې ددې پښتون وطن هر کاڼې او هره لوېشت خاوره په
وينو لمبېدلې او د اوسنۍ عصر په بارودو کې سوځېدلې ده.
يرغلګر راغلي زور يې وهلی چې مات شوي نو بس تللي خو د
نړۍ وروستی ستر ښکېلاکي ځواک انګرېز چې همدې پښتون
قام له برمه او د سلطنت له بام او تخته راګوزار کړ نو انګرېز د
خپل شيطاني فطرت له مخې خپل سور او شين سترګی پوځ له
پښتون وطن او سيمې نه مات ګوډ وويست خو په حقيقت کې
يې خپل تور نسل په وراثت په سيمه کې پرېښود خو توپير يې
دا و چې شين سترګي د کفر په نامه پښتنو غازيانو مات کړل
خو انګرېز ورته محمد علي جناح جوړ کړ او د اسلام په پاک
نوم او غږ يې يو ځل بيا خپله امپراتوري او باداري د سيمې د
غلامانو په شکل کې ټينګه کړه او دا داسې مقدس نوم و چې
پښتنو ورته سمدواره توري په ځمکه کېښودلې .انګرېز نه
يوازې دا چې دوه لوی ګاونډي هېوادونه سره ووېشل بلکې د
خپلو دايمي ګټو او د وخت د قوي او رقيب شوروي پر
وړاندې يې زمونږ وطن او خاوره يو ځل بيا سنګر او دفتر کړ.
منظمو او غيرتي پښتنو د خپل بابا د عدم تشدد غږ بدرګه کړ
او د تور انګرېز د مکر ښکار شول دا ځل سور انګرېز د تور
غلام انګرېز پر اوږو د اسلام ټوپک کېښود او هر هغه کس
يې په سر پرې وويشت چې د حق او خپلواکۍ پوښتنه او

غوښتنه یې کوله چې تاریخي ښېلګه یې د پاکستان تر زېږېدو
لږ وروسته د بابړې قتل عام او د ټکر د ولس قتل عام دی .
وژلو او نیولو ته اسلامي مهر او ټاپه پیدا شوه او د اسلام په
چوکاټ کې د حق غوښتونکو ځپل د مکار تور او سور انګرېز
له خوا پیل شول .زندانونه ډک شول .حق غوښتونکي غداران
ونومول شول او د وحشت او بربریت په ښودلو او خپرولو د
خلکو خولې بندې او ګنډل شوې ، ځینې بې شعوره کسان
طامع شول او ځینې واخیستل شول .پښتون ولس تر دې دمه
پوره ۷۷ کاله محکوم شو ، ووهل شو ، ذلیل شو ، په خپله
خاوره بې اختیاره شو ، په خپلو وسایلو کې بې زورګاره شو
په سیاسي او اداري واک او مسایلو کې هېر او ببخي بې
برخې شو لنډه دا چې د پاکستان په اسلامي جمهوریه نومي
ملک خدا داد کې محکوم ، اسیر ، استعمار او استثمار شو.
قومي او ملي شخصیتونه یې ترور شول او ټول قام بې سره او
بې مشره وساتل شو ، د پښتون په نوم سیاسي ګوندونو ته هم
اختیارات ورنه کړل شول او هسې د پښتون ملت د تېروتنې او
غلونې په خاطر په رسمي چوکاټونو کې داخل کړل شول ، څه
واخیستل شول او چا د حالاتو سره سم ځانونه جوړ کړل .د
تاریخ په اوږدو کې د پښتنو په قتل عام او د پښتنو په تذلیل
یو ګوند هم غږ پورته نه کړ او په ګوند کې که کوم د شعور
خاوند او دردمند غږ پورته کړ نو سبا به ورک او ووژل شو.

د افغانستان د شاهي او جمهوري نظامونو په ضد د افغان حکومت مخالفین په لاهور او اسلام اباد کې وروزل شول او د افغانستان د پاره ورانکارۍ ته ولېږل شول.
په بر وطن ګران افغانستان چې کله روسانو یرغل وکړ د پاکستان غوا لنګه شوه د دنیا نه یې هر ډول مرستې راټولې کړې پنجاب یې کور په کور جوړ کړ خو پښتونخوا او بر وطن افغانستان یې لوټې لوټې کړل.
د امریکا په ټرېډ سنټر چې کله بریدونه وشول بیا د پنجاب غوا لنګه شوه او دا ځل داسې لنګه شوه چې جنرال مشرف ورسره پښتونخوا هم لوټې لوټې او کنډواله کړه.
په باجوړ، سوات، وزیرستان او نورو سیمو کې یې د خپلو روزل شویو شخصي سپیني ملېشې په واسطه جنګونه پیل کړل په یوه لاس یې له نړۍ والو څخه د تروریزم په نوم مرستې او ډالر اخیستل او په بل لاس یې بېرته په سیمه کې ورانکاري او تروریستان روزل.
د سوات او وزیرستان مظلوم ولس یې پوره شل کاله د جنګ په لمبو کې وسوځاوه هره پښتنه مور یې بوره او هره پښتنه خور یې سر توره کړه. ماشومان او سپین ږیري یې ووژل او په هیچا یې ترحم ونه کړ.
په زرګونو پښتانه یې په خپل وطن کې بې کوره او مهاجر کړل، د پښتنو عزتونه یې لیلام کړل او نړۍ والو ته یې د امن

پسنده پښتون غلط تصویر او تصور وړکړ چې ګوندې پښتون یعنې ترهګر او وژونکی.
د تور تاریخ دا تور دور هم پښتنو تېر کړ په دومره لوی قتل عام او سترې انساني غمیزې نه نړۍ اکشن واخیست او نه په پاکستان کې موجوده د پښتنو میراثي سیاسي ګوندونو او دا تاریخي ننګ او شرم یې خپل راتلونکي نسل ته پرېښود.
دا چې خدای تعالی عادل ذات دی او د خپل بنده اجر نه ضایع کوي نو د محکومو او مظلومو پښتنو د وحدت او راټولېدو په خاطر یې منظور احمد او د پښتون ژغورنې غورځنګ په طبیعي بڼه او شکل پخپله د همدغو پنجابیانو د مظالمو په نتیجه کې رامنځ ته کړ ، پښتون هر څه لرل خو مشر او یووالی یې نه درلود او د سیاسي لیډرشیپ د نه شتون له امله دا غمیزه کابو اوه اویا کالو ته اوږده شوه اوس الحمدلله پښتانه راویښ او منظم شول پي ټي ایم یو پلاټ فارم شو یو لښکر شو یو غږ شو او یو جرئت شو ولس ویښ شو او د وېرې مهرونه یې له سترګو او زړونو ، نه لرې شول یو په بل باور پیدا شو او د پښتنو لاسونه د دښمن پر وړاندې یو موټی شول.
خو استعماري مکار نظام ډېر مکار دی ډېرې هڅې یې ددغه تحریک د بدنامولو او شیندلو دپاره وکړې خو شکر الحمدلله تردې دمه یې دسیسې یو په بل پسې ناکامې شولې ، د غورځنګ ډېر تکړه او ژبور کسان یې په ډېرې سپین سترګی

شهیدان کړل په موجود نظام او اداره کې د شهیدانو قاتلان په سپینه ورځ ورک شول ، د شهید عثمان خان کاکړ لالا ، د شهید عارف وزیر ، د شهید پروفیسور محمد ابراهیم ارمان لوڼي ، د شهید طاهر داوړ او د نورو شهیدانو قاتلان ورک شول ، د شهید نقیب وزیر ښکاره قاتل راو انور ونه نیول شو بلکې مکافات او سرکاري تحفظ هم ورکړل شو .د غورځنګ اکثره تکړه مشران ونیول شول او پرته له کوم جرم او ثبوت په میاشتو میاشتو او کلونو په زندانونو کې واچول شول .تر دې چې بالاخره د غورځنګ وياند او تکړه شاعر حضرت نعیم غیرت چې په غورځنګ کې په ګیله منه وزیر مشهور و هم لومړی زنداني او بیا دا دی په ډېرې بې رحمۍ د سپین اسلام اباد په زړه کې په رڼا ورځ شهید کړای شو او قاتلانو ته سرکاري تحفظ ورکړل شو.

د ظلمونو دې لړۍ او دې وروستۍ پېښې یو خل بیا ټول پښتانه د نړۍ په هر ګوټ کې وردردول خو دې لوی او نه هېرېدونکي درد پښتانه لاپسې د تور دښمن پر وړاندې متحد او پیاوړي کړل.

شهید ګیله من د نړۍ یو له هغو استثنایي کسانو څخه شو چې په لکونو خلکو یې غائبانه جنازې د نړۍ په هر ملک او هر ښار کې وکړې په هر هېواد او هر ښار کې ستر ستر لاریونونه وشول او مکار دښمن ته یې د خطر وروستی زنګ وشرنګاوه.

د شهید ګیله من وینا او شاعري د پښتون ولس د زړونو رسا غږ دی شهید ګیله من لکه شهید ملنګجان ددې ستر ولس ملي شاعر وپېژندل شو او د خولې هر بیت یې لکه زر ارزښتمند او ملي امانت شو.
موږ په مرګ باور او ایمان لرو دا منو چې شهید ګیله من به نور په فزیکي او حضوري توګه زموږ سره نه وي خو په معنوي توګه هغه ژوندی دی د هغه کلام او شعارونه به د خپلواکۍ تر وروستۍ شېبې انګازې کوي موږ به راویښوي ، موږ به ننګوي او موږ ته به د ننګ او غیرت جذبې راکوي لکه څنګه چې شهیدان مړه نه وي ژوندي وي دغه شان شاعران او د فکر خاوندان هم نه مري تر شا لښکر پرېږدي او لښکر د سنګر د تاوده ساتلو ذمه واري لري ، دا د حق او باطل تر منځ سپېڅلې جګړه ده دا د ظلم او ناروا پر وړاندې پاکه ملي مبارزه ده او دا د یوه تاریخي ستر قام د ارمانونو او ارزښتونو یوه نه ستړې کېدونکې قافله ده ، زموږ تور مخی دښمن دې په دې پو شي چې دغه کاروان او قافله اوس روانه ده او منزل ته به خامخا ان شاءالله رسیږي راستنیږي نه ، نو په مرګونو او وحشتونو دا سرتېري نه وېریږي او نه به د مشرانو او کشرانو په دغه ډول ظالمانه وژنو خبره ختمه او خلاصه شي .کابو د اوه اویاو کلونو حساب په منځ کې پروت دی د مالي تاوان جبیره خو به وشي ځکه چې پښتانه ماده پرست نه دي ، خو د

عزت او ناموسي د تاوانونو ټوله ذمه واري د ریاست په غاړه پرته ده او دا حسابونه به تصفیه کول غواړي.
درنو لوستونکو زه نه غواړم چې دلته خبرې نورې اوږدې کړم موږ ټول د دغه سپېڅلي ملي لښکر او غورځنګ غړي یوو هم د پښتونولۍ هم د انساني شرافت او هم د اسلامي ورورولۍ او کرامت له مخې مسؤلیت لرو چې یو د بل په درد او غم کې شریک شو.
شهید ګیله من زموږ ملي شاعر او په ملي او اسلامي ارزښتونو ملي شهید دی .له همدې امله لازم او اړین ګڼو چې د شهید ګیله من دغه ملغلرې چې د حق د ګټلو په خاطر یې پرې خپل سر بایلود راټولې ، محفوظې او راتلونکي کول یعنې نسل ته وسپارو.
دا یادونه ضرور ګڼم چې ووایم ددې ټولګې ډېری شعرونه پخپله شهید ګیله من ، زلمي سلیمان جان ساپي ته رالیږلي وو چې ورته یې ډیزاین او چاپ ته تیار کړي ، د ګیله من په وینا چې ویل یې اکثره یې نوي شعرونه دي او د کتاب دپاره یې پخپله نوم هم د خپل یوه شعر یو بیت ټاکلی و چې داسې و "زه په سازونو او سندرو باندې مړ ژوندی یم " خو ترڅو چې سلمیان جان دا شعرونه سره جوړول تر جوړېدو دمخه ګیله من شهید کړای شو او دا شعرونه یې موږ سره امانت پاتې شول نو ما ګران سلیمان جان ته وویل چې بس ته خپل کار ته ادامه ورکړه زما سره یې هم ځینې شعرونه شته هغه به هم ورسره یو

ځای کړو او د ژمنې سره سم به یې چاپ کړو ، د سلیمان په وینا چې ویل یې د ګیله من هیله وه چې د غورځنګ مشر ښاغلی منظور احمد پشتین هم باید پرې یو څو کرښې ولیکي او ګیله من ویل چې د ښاغلي منظور سره مې په دې هکله خبرې شوي دي او لیکنه به ترې راواخلم.

ما د ګیله من د هیلې د پوره کولو په خاطر هڅه وکړه چې د ښاغلي منظور لیکل هم پرې راواخلم ، په دې هکله مې د ښاغلي منظور سره اړیکه هم وشوه د لیکلو ډاډ یې را کړ خو له یوې خوا د ښاغلي منظور د بوختیاو له امله او له بلې خوا د خلکو د کتاب غوښتلو تنده چې موږ یې د چاپ اعلان کړی و ، دومره ډېره وه چې موږ ته یې دا مهلت رانه کړ چې د ښاغلي منظور لیکلو ته لږ نور انتظار هم وکړو ، نو ان شآءالله د کتاب په دویم او درېیم وار چاپ کې به خامخا د شهید ګیله من دا هیله هم پوره کړو..

د شعرونو د ترتیب او سکنړو په وخت کې یوه ستونزه دا وه چې د شهید ګیله من ځینې شعرونه په وزیرواله او کلیواله لهجه وو چې په عام ډول پرې د نورو سیمو د پښتنو پوهېدل ګران وو نو ددې په خاطر چې د شعر اصلیت ته تاوان او تغییر پېښ نه شي موږ له څو مېتودونو څخه کار واخیست او د اصلي شعر تر څنګ مو د هغه لږ معیاري بڼه او شکل هم چاپ کړ د فیسبوک پر پاڼه مو د ډېرو ملګرو نظریات هم پرې راټول کړل او دا ستونزه مو په امانتدارۍ حل کړه.

شعرونو ته اکثره سرلیکونه هم ما د خپل کار د اسانتیا په پار وټاکل ، موږ هڅه کوو چې د شهید ګیله من نور خواره واره شعرونه هم له خپرونو راټول کړو او وخت په وخت یې چاپ کړو ترڅو ښه خوندي شي او د ورکېدو مخه یې ونیول شي.
ددې ترڅنګ نورو ملګرو هم پټېیلې ده چې د شهید ګیله من په هکله شوې منثورې او نظمومې لیکنې راټولې او چاپ کړي چې دا هم یو غوره او خورا ښه کار دی .کورني او د غورځنګ مشران غږي هم غواړي چې د شهید د زندان خاطرې د "یوویشتمې پیړۍ دوزخ" هم چاپ کړي او همدارنګه لازمه ده چې د شهید ګیله من پخوانی چاپ شوی شعري غور چاڼ " اویا کاله برباد شوم " هم یو ځل بیا په ډېر تیراژ چاپ شي.
بیا هم وایوو که اړتیا پیښه شي ، خلک او ملګري د بیا چاپ غوښتنه وکړي بیا هم موږ تیار یوو چې د خپل ملي مکلفیت له مخې نوموړی کتاب چاپ کړو.

په ملي او پښتنه مینه او درنښت

**اجمل اټک یوسفزی**

## لوبې

ای پښتونه په ایمان دې لوبې وشوې
په جومات او په قران دې لوبې وشوې

د غفلت د خوب نه کله را پاځېږې
د ملالې په پېزوان دې لوبې وشوې

یې مُسلِم د اُمتې حق خو ادا کړه
په حدیثو د جانان دې لوبې وشوې

ای د وخت مجنونه هله راېیدار شه
د لیلا په تور زلفان دې لوبې وشوې

سر ټیټې دې د تاریخ پاڼو کې نشته
په ناموس د باباجان دې لوبې وشوې

مالي پاخه په چمن دې زاغان ګډ دي
په بلبل او په ګلان دې لوبې وشوې

په تاریخ کې دې نام څه و اوس دې څه دی
د میړانې په نښان دې لوبې وشوې

شین ګلخان شوې په یو ورور دې ننګ ونکړو
په خیبر او په افغان دې لوبې وشوې

د پښتون خبره کړښه وه د کاڼي
دا نن ولې په ژبان دې لوبې وشوې

ټوپک پرېږده په قلم پورې دې وژني
په شاګرد په اُستاذان دې لوبې وشوې

ګیلامنه تا کې ننګ کله رادرومي
چې په ګران وزیرستان دې لوبې وشوې

# تکبير

په حقه هيڅ ويره له دار او له زنځير مه کوه
مړ شه قيدي شه غلامي دې په ضمير مه کوه

ما لا د خپلو کونډو بورو تپوس نه دی کړی
ځه مخکې تېر شه ما ته ذکر د کشمير مه کوه

که چېرته مړ شوم په بې ننګه او بې پته مرګي
مورې په مخ مې لاړې توئ کړه په ما وير مه کوه

پردي جامه کې اکثر پټ وي مزدوران د پردو
افغانه ړوند باور په خان مُلا او پير مه کوه

دا وروروژنه ده جهاد نه دی امير صاحبه
زما په مرګ الله اکبر نارې تکبير مه کوه

مرګ خو حتمي دی خامخه مرې خو په نره مړ شه
اې ګيلامنه يازه تېښته له تقدير مه کوه



# نه شرمېږي

د خویندو او د میندو د سلګو نه نه شرمېږي
چې بلې دې پر کور دي د لمبو نه نه شرمېږي

ستا هره ورځ دوه درې ماشومان الوځي په بم
نو ته د هغو پرې پرې پښو لاسو نه نه شرمېږي

ته نرې چُپه خوله ناست یې ستا حق ورانګه ثناء غواړي
رېښتیا وایه د دغو جینکو نه نه شرمېږي

عبث دې اوږده کړي دي بس ځان دې پرې ببر دی
د خپلو څنو بېرې او بریتو نه نه شرمېږي

راوړي یې تصویرونه ماشومان هرې جلسې ته
د هغو ورکو وروڼو پښتنو نه نه شرمېږي

هارون بلور طاهر داوړ مشال دې څنګه هېر کړل
بې ننګه د نقیب د پرهرو نه نه شرمېږي

وهي دې ماشومان پکې د ژمي بارانونه
ای ته د بکاخېل کیمپ د خېمو نه نه شرمېږې

چې لاندې تر د پوال یې شول قرانونه کتابونه
د ورانو مدرسو او جماتونو نهٔ شرمېږې

په تا کې نه غیرت شته نه پښتو په نوم ګلخان یې
چې ته د ګیلامن د پیغورو نه نهٔ شرمېږې

**یادونه** شهید ګیله من دلته د قام دزلمیو د ننګونې په پار د غورځنګ دوه زړورې او ژبورې خویندې په وړانګه لونې او ثناء اعجاز هم یاد کړې دي دغه دوه ویاړلې خویندې د غورځنګ د لومړۍ ورځ سر لبنکرې وې او په ډیره میړانه یې په هره غونډه کې برخه اخیستې

## مالګې

لــه پــردو څنګــه ګیلــې وکــړو پــه ظلمونــو بانــدې
چــې خپــل مــو مــالګې دوړوي پــه پرهرونــو بانــدې

د وطــن پیغلــې مــو اخــر دې حــد تــه ورســیدې
د بــې وســعۍ شــعار لیکــي پــه مړونــدونو بانــدې

د نړۍ خلــک بــه پــه کومــه سترګــه ګــوري مــوږ تــه
چــې دی هیــواد کــې مــو بنــدیز پــه مکتبونــو بانــدې

وطنه درې رنګه بیرغ دې ځکه نه شي زغمی
خپل دې مئین دي په پردیو بیرغونو باندې

که راویښ نه شوئ نو دا واورئ را روان نسل به
قسم په خدای لاړې در تو کړي په قبرونو باندې

یه خدایه موږ ته له وطن هغوی دوزخ جوړ کړی
څوک چې مئین دي ستا په حورو جنتونو باندې

چې ددې عدم تشدد به هم څه حد وي کنه ؟
تور سره او سپین مو شول راستړې په مرګونې باندې

ای ګیلامنه لر و بر افغانان نه یو کیږي
که ورته مړ شي په نارو او په شعرونو باندې

## حل

نه مونږ په ارام کینو نه ته د مسلې حل غواړې
شاړې مورچې ته لکه چې بیا اباد یدل غواړې

نیمه قیصه خورې نیمه راباسې په ممبر ناست یې
مثلاً مثلاً وایې صفا وایه څه ویل غواړې

کلي کې د میندو بچي ورک پسې ړندې شولې
جار محبوبې ته څنګه رانجه غواړې کاجل غواړې

زړه کې دې پاک سر زمین په خوله د لر و بر ناری
جار رهبره ته به چې منه او که کابل غواړې

او په انسان دوسته هیوادو کې لاریون ځای نیسي
اخ پښتونه ته په احتجاج حق له ځنګل غواړې

زه د جنازو او د قبرونو نه اوزګار نه یم
ای لیونی ته له ما په خپل حُسن غزل غواړې

ته د غلامی په خوب ویده قام ته ناري وهې
یاره ګیلامنه په دوی ځنګه تل وهل غواړې

## ولاړ دي

ځار دې شم له بریتو څه ګیلې ګیلې ولاړ دي
کور په دروازه کې دې پردي سړي ولاړ دي

نن ورځ ده د اختر زمونږ د کلي هدیره کې
د هر مزار وه سر ته یتیمان بچي ولاړ دي

دا هغه د غیرت ډک پښتانه دي دغه نن چې
خیرات ته په قطار کې ډېر په ورین تندي ولاړ دي

زمونږ د وطن سره او سپین لاهور پینډۍ ته لاړل
په دښتو کې یې صرف د کیکر ازغي ولاړ دي

دا حال دی د وطن د مشرانو ګیلامنه
چې عام د کیمپ سپاهي ته په جناب و جي ولاړ دي

## سازونه

د هــر کـــاروانِ اول منـــزل معلومـــول پکـــار وي
بیا پسې نیت تړل او سم په کلکه تلل پکار وي

راشــه یــوه دوې د خیــر خبـرې پښــتنو تــه وکــړه
که په کور ناستې خور او مور ته دې کنځل پکار وي

زه پــه ســازونو او ســندرو بانــدې مــړ ژونــدی یــم
خو د جومات او هُجرې فرق په کې کول پکار وي

که څوک افضل جهاد کوي نو دا قوي حدیث دی
چې د جابر حکمران مخ ته حق ویل پکار وي

ملګرتیا مه کړه که کوي یې د پښتو متل دی
چې درګه نیسې نو د درګې تینګ نیول پکار وي

مور ته د روس او امریکې له واده مخکې مخکې
د دې ډیورنډ کرښې له منځه تلول پکار وي

دښمن که هر څو زورور شي بیا یې هم تر مخه
سر ټیټول نه دي پکار سر ماتیدل پکار وي

چې ددې مور خاورې په ننګ ځوانان راوپاراوي
ای ګیلامنه نن سبا داسې غزل پکار وي

## غدار یم

که حق خبره غداري وي ښه ښکاره غدار یم
پرون غدار وم نن غدار یم سبا بیا غداری یم
که چېرته سپینه او صفا خبر کول جرم وي
که د مظلوم او یتیم اوښکې پاکول جرم وي

که چېرته خپل مظلوم ولس ته حق غوښتل جرم وي
که د تور سرو د حیا ناموس ساتل جرم وي
نو زه مجرم یم ما بندي کړئ ما په دار کړئ راشئ
د خپل وطن قام په خبره مې سنګسار کړئ راشئ

زه مې د خپلو شهیدانو پور له چا وغواړم
د کوټې شار د وکیلانو پور د چا وغواړم
د ارمي سکول د سټوډینټانو پور له چا وغواړم
د باجوړ د شهیدانو پور له چا وغواړم

زه د کنډر وزیرستان تپوس له چانه وکړم
زه د عثمان عارف ارمان تپوس له چانه وکړم
زما وطن کې په زرهاوو کونډې بورې ګرځي
بې لوپټې پېښې ابلی پېښې ګرځي سرتوره ګرځي

ستړې مات دی در په در ګرځي مجبوره ګرځي
په وچو شونډو پښتنې د جنت حورې ګرځي
دا نه په مونږه امریکې نه هندوستان کړي دي
راسره هرڅه دې دوه مخي پاکستان کړي دي

بدل ترې اخلم خامخا ترې نن په شور اخلم
که په شور و نه شوه سبا یې بیا په زور اخلم
زه مې د خپلو وینو یو په سله پور اخلم

هم يې نصرت ورسره تر يوراخلم

هو زه غدار يم ښه په جاراو برملا غدار يم
که حق خبره غداري وي ښه ښکاره غدار يم
پرون غدار وم نن غدار يم سبا ييا غداري يم
عافيه صديقي په ډالرو باندې چا خرڅه کړه

په انګريزانو چا ناموس او چا حيا خرڅه کړه
په لال مسجد مسجد افسر ظلمونه چا وکړل
اې پاکستانيانو اسرايل او که انډيا وکړل
پردي جنګونه په ډالرو باندې چا وکړل

غټ غټ بمونه په ډالرو باندې چا وکړل
وزيرستان ته دا تاجک او اوزبک چا راوړل
په جيګيسټونو او جيلکفوټ او پاټک چا راوستل
پرويز مشره لا اساما مسان چيرته دی

راو انور غوندې د وخت فرعونان چیرته دي
ابې ننن باندې کیکونه بسکټ جا وخوړل
وار پرې چا کړې و ییرته راکټ جا وخوړو
ووایې زه تر مشرف راحیل باجوا غدار یم

که حق خبره غداري وي ښه ښکاره غدار یم
پرون غدار وم نن غدار یم سبا بیا غداری یم
مور ته تکړه یې له بنګاله خپل پطلون راوړه
درنه بیل شوی اپ پرون کشمیر راوړه

په لر او بر افغانانو سترګې مه اوباسه
په دې مظلومه انسانانو سترګې مه اوباسه
هو حوصلې مه بایلئ ای زما د غورځنګ ملګرو
سره روان شئ کلک یو ځای ځنګ په ځنګ ملګرو

پاڅئ همدا وخت دی د پریکړې او بدلون ملګرو
په وطنی شمعه شیدا او لکه پتنګ ملګرو

ان شاءالله بيا به په اتک خپله جنده ودرو
د خپلواکۍ بيرغ به پاس په ملکره ودرو

دا مې نعره ده ګيلامنه خامخا غدار يم
که حق خبره غداري وي ښه ښکاره غدار يم
پرون غدار وم نن غدار يم سبا بيا غداری يم

يادونه : په پورتني نظم کې د رياست د کړو تاريخي جناياتو پوره تاريخ او داستان پورت دی . د بېلګې په توګه په کويټه کې د پښتنو وکيلانو قتل عام چې رياست يې ذمه وار و . د پېښور په ښار صدر کې د ارمي سکول د لسګونو ماشومانو وژل چې وروسته ثابته شوه چې رياست پخپله پرې حمله کړې وه او دا حملې يې پخپله ځکه کولې چې يو خوا يې پښتانه وژل او بل خوا يې د نړۍ والو پاملرنه او خواخوږي جلبوله چې ګوندې دوی پخپله هم د ترهګرو د بريدونو لاندې دي او دا داسې وخت وو چې په افغانستان کې د ناټو پوځونه وو او په دوی دا تور و چې دوی د افغان حکومت وسلوال مخالفين روزي او مرسته يې کوي نو دوی ځکه دا کارونه کول چې ځان له دې توره خلاص کړي او هم به پرويز مشرف دنيا ته ويل چې دا دی وګورئ موږ هم د تروريستانو د بريدونو لاندې يوو.

بله تاریخي یادونه دلته په اسلام اباد کې په لال مسجد باندې د پاکستان د پوځونو د برید داستان دی چې د مشرف په امر پاکستاني پوځ د اسلام اباد د ښار په منځ کې په لال جامع مسجد او مدرسه برید وکړ او د لسګونو ملایانو، طلابو تر څنګ یې هم مسجد شهید کړ او هم یې په سلګونو د قرآنکریم نسخې د جنګ په لمبو کې وسېځلې.

بله لویه تاریخي او د پاکستان د شرم دایمي او د بې ایمانی خبره او داستان د عافیه صدیقي دی. عافیه صدیقي یوه پاکستانی ساینس پوهه مېرمن وه چې په کال دوه زره اته کې په امریکایي قوتونو د ډزو په تور ونیول شوه او د پاکستان دولت خپل دغه ناموس یعنې طبعه د امریکا په غوښتنه امریکایي عدالت او امریکا ته وسپارله چې تر ننه په امریکا کې په امریکایي زندان کې پرته ده.

یادونه: په پورتني شعر کې شهید ګیله من د پښتون قام د قتل عام لوی لوی قاتلان یاد کړي دي. لکه په سند کې د پولیسو په وردی کې د سوونو پښتنو قاتل راو انور چې نقیب وزیر یې هم شهید کړی دی. بل د پاکستان د پوځ درې مشران چې د پښتنو د قتل عام مسؤلین دي جنرال مشرف، راحیل شریف او قمر جاوید باجوا او همدارنګه د ابي نندن هندي پیلوټ یادونه هم کوي چې الوتکه یې پاکستان نسکوره کړه ابي نندن یې ژوندی ونیوه مګر چا له وېرې یوه څپېړه هم ورنه کړه او د نازولي میلمه په شان یې ونازوه.

## پاکستانه

ای د ژوندیو قبرستانه رب دې ونړوه
د میرانشاه فوځي زندانه رب دې ونړوه

د پښتنو نه دې عزت ابرو او ژوند اخیستی
ای منافقه پاکستانه رب دې ونړوه

**یادونه :** شهید ګیله من څو میاشتې د میرانشاه په فوځي زندان کې زنداني و په زندان کې چې کوم ظلمونه او وحشت ورسره شوی وو هغه یې په یوه نظم کې ټول یاد کړي دي ، نوموړی نظم په دې ټولګه کې شته نور جریان به هلته ولولئ.

## د لیلا گیله

پرون لیلا داسې په چل ول کښې گیله کړله
ویل یې خفه نه شې څه داسې یې قیصه کړله
چې ته شاعر یې او د مینې قیصې نه پېژنې
د محبت شنې سرې رنگینې قیصې نه پېژنې

چېرې یوه ورځ دا زما شنکي خالونه یاد کړه
یامې چشمان یا مې د سرو شونډو سرونه یاد کړه
یا مې د تورو زلفو ول په ول تارونه یاد کړه
یا خو مې چېرته د بنگړو ډک مړوندونه یاد کړه

چېرته یو دوه قیصې زما په تور وربل ولیکه
یو دوه زما په دې نرۍ غاړه غزل ولیکه
چې زه ډاډه شم چې په ما پورې سندرې لیکې
زما د سپینې خولې وړې وړې خبرې لیکې

چې کلـه وستایې زمـا د مـخ سـرخي لالیـه
یـا دې منمـه هـر یـو شعر او شـاعري لالیـه
مـا هـم پـه وچـو وچـو شونډو ورتـه مـړه وخنـدل
زړه خو مې نه کېده په زوز مې په ډک زړه وخندل

ما ورتـه وویـل لېونۍ دا ستا ګیله په ځای ده
زه یې منمـه دا ستا هره یوه قیصه په ځای ده
دا هـم منـم چې دا ستا حسن د ستایلو وړ دی
هـر یـو انـداز دې پـه غـزل د یـادولو وړ دی

خـو زه څـه وکړمـه پښـتون یمـه حیـا رادرومـي
قسم په خدای که مې په خوله د عشق تپه رادرومي
څنګـه یـې ولـیکم ضمیر اجـازت نـه راکـوي
مـا تـه د وران وطـن تصـویر اجازت نـه راکـوي

چې شنه خالونه لیکم شنه لوګي بارود رایاد شي
هغـه د کلي پـه جومات د بمبار دود رایاد شي
چې سره لبان لیکم نو سرې وینې مې زړه تـه راشي

د ظلمي وروو تودې تودې وينې مې زړه ته راشي

هغه د پلار په مخ پرتې وينې مې زړه ته راشي
هغه د مور په سر چې تلې وينې مې زړه ته راشي
نه نه نو زه به څنګه ستا په مخ سرخي يادوم
په مخ پرتې خاورې د خوار يتيم بچي يادوم

اوس زه دا ستا د شنو بنګړو ډک مړوندونه ياد کړم
که د ځوانانو په لاسو کې زنځيرونه ياد کړم
اوس راته وايه که دا ستا نخرې نازونه ياد کړم
که هغه د کونډو بورو ميندو فريادونه ياد کړم

اوس زه دا ستا د تورو زلفو تور تارونه ياد کړم
که د افغان ملت نه ډک تور زندانونه ياد کړم
رنګه ځواني چې يادوم بيا دا خيالونه راشي
دستي مې زړه ته رنګ کنډر کنډر کورونه راشي

خیال ته مې هغه لوټې لوټې بازارونه راشي
اف بیا په خیال کې د خپل کور رنګ دېوالونه راشي
زمونږ په لراو بر افغان قیامتونه جوړ دي
په هر یو کلي او هر کور کې ماتمونه جوړ دي

مونږ خو په یوه ورځ کې له سلو زیات قبرونه جوړ دي
د جنازو نه مو سم لوی لوی قطارونه جوړ دي
د کلي پیغلې د بېلتون په رنځ رنځورې ژاړي
دلته په هر یو کور کښې درې درې کونډې بورې ژاړي

ستر یې مات دی په یو بل کور کې مزدورې ژاړي
تکري یې پاتې دي په منډو ځې سرتورې ژاړي
بچیان مو ګرځي په کوڅو کې خېراتونه غواړي
یوه ډوډۍ پسې د ښار واړه کورونه غواړي

اوس دا هر څه په اوبو یوسم ستا وربل یاد کړم
د یتیمانو ژړا پرېږدم ستا خندل یاد کړم
اوس راته وښایه چې ستا نتکۍ چارګل یاد کړم

که بل اورونه پېښور او په کابل یاد کړم

ځنګ د ځوانانو په لاشونو باندې پښې وا ړوم
ځنګ په دې سوو اندامونو باندې پښې وا ړوم
ما ته د خپلو شهیدانو وینې زور راکوي
د خړ کمر شهیدان پل په پل پیغور راکوي

چې د شهید ارمان د قبر تصویرونه وینم
چې د مورکۍ یې په دعا اوچت لاسونه وینم
نو په دې خپلې بې وسۍ په چغو چغو ژاړم
د پښتون قام په بربادۍ په چغو چغو ژاړم

لا خو مې ارتې تنۍ واره دښمنان ګرځي
زه ورته ګورم د نقیب تور قاتلان ګرځي
ما د طاهر داوړ د سوي بدن پور وانخست
ما لا تر نن بدل د ګران هارون بېلور وانخست

ما لا د خپل قام ننګیالي ځوانان ګتلي نه دي
ما د عارف غوندې تنکي ځوانان ګتلي نه دي
لیلا ما وېخښه خالونه ورېل ښکه یاد کړم
ستا نرۍ غاړه ستا ورشنډې چارګل ښکه یاد کړم

ترڅو چې وانخلم د دغه شهیدانو بدل
د کونډو بورو ځورېدلو یتیمانو بدل
ترڅو چې ونه کړم تپوس د نړېدلي وطن
دا د بارودو په اور وریت او سوځېدلي وطن

زه مې چې بېرته خپل غېرت او ایمان ونه کتم
لکه پسوئه حلال شوي مشران ونه کتم
زما نه مه کوه لیلا د ښنو خالونو طمعه

**یادونه** :په نوموړي نظم کې د ریاست له خوا
تول ظلمونه په پښتون ولس یاد شوي دي . د
پښتون ژغورنې د غورځنګ هغه نومیالي هم یاد شوي چې تر
شهید ګیله من وار دمخه د پنجاب ریاست په ورته بڼه شهیدان
کړي دي لکه شهید پروفیسور ابراهیم ارمان لوني . شهید
سناتور عثمان خان کاکړ او شهید عارف وزیر .چې دغه درېواړه

په ورته شکل شهیدان شوي دي او ګیله من هم ریاست په همدې بڼه شهید کړ.
په پورته نظم کې د تاریخ بل اتل طاهر داوړ هم یاد شوی دی.
طاهر داوړ د پنجابي ریاست کارمند و او پولیس او د لوی منصب خاوند و، کله چې د نقیب وزیر تر شهادت وروسته د پښتون ژغورنې غورځنګ رامنځ ته شو او د حق غوښتلو لاریونونه پیل شول نو طاهر داوړ هم حق ته غاړه کېښوده او د خپل مظلوم قام په ننګه ودرېده خو د بېرژر ریاست ونیوه او په ډېرې بې رحمۍ سره یې شهید کړ او جسد یې ورته تر تورخم پورې غاړې غورځولې و چې ګوندې افغان حکومت وژلی دی.
ریاست د طاهر داوړ سره دا بې شرمي او بې رحمي ځکه وکړه چې نورو کارمندانو ووېروي او غلي یې کړي.
په پورته نظم کې د خړ کمر یادونه هم شوې او په خړ کمر کې د ریاست پوځ په بې وزله ولس یو بل تاریخي ناتار کړی چې د تاریخ په پاڼو کې دغه لوی وحشت ثبت دی

د لـر و بـر افغـان سـتر افتخـار علـی وزیـر
درځـــار علـــي وزیـــره

وهې د خپلواکۍ ناري په جار علي وزیره
درځـــار علـــی وزیـــره

تـه کلـه کلـه دغـه تپـه ووایـې چې مـوري
لنـډۍ ټوپـک مـې راکـه

راغلـي دي وطـن تـه بلاګـانې تـورې تـورې
لنـډۍ ټوپـک مـې راکـه

پنجاب لـري لـه دې قيصـو نـه ډار علي وزیره
درځـــار علـــی وزیـــره

**یادونه** : دا شعر شهید ګیله من هغه وخت په شور او زوګ په غونډه کې ویلو کله چې علي وزیر د پنجاب لـه تور زندان نه را ایله شوی و دا د هرکلي او استقبال له شعر و چې په زرګونو ګډونوالو به په لوړ غږ بدرګه کولو.

## حد نه لري

ستا په بیلتون دومره غمجن یمه چې حد نه لري
په ماشوم زړه داسې خوږمن یمه چې حد نه لري

کله مهاجر شمه او کله ترهګر یا غدار
داسی ذلیل په خپل وطن یمه چې حد نه لري

که یې په مینه کې په دار هم شم پروا نه لري
په پښتون قوم داسې مینن یمه چې حد نه لري

د پښتنو په قتل عام خاموش ملک او ملا
ستاسو نه دومره ګیله من یمه چې حد نه لري

د باچا خان امر ماتیږي کنه خدای ګواه دی
نور دومره تنګ له دې دښمن یمه چې حد نه لري

د پښتنو حیا لوټیږي او زه چپ خوله ناست یم
زه ګیله من دومره ډارن یمه چې حد نه لري

## بغلان افغانستان

په وینو سور پرهر پرهر دې کړمه
د مور په غیږ کې ترهګر دې کړمه

چې ته عسکر شوې نو طالب شومه زه
چې ته طالب شوې نو عسکر دې کړمه

زه دې په هر رنګ کې وژلې یمه
کافر د پاسه په ممبر دې کړمه

افغان بچې یم در په در دې کړمه
خرڅ په کالدارو په ډالر دې کړمه

په ګیلامن هیڅوک زړه نه خوږه وي
قتل په داسې چل هنر دې کړمه

**یادونه :** د بغلان افغانستان عنوان پخپله شهید ګیله من دې شعر ته ورکړی دی ، د همدې کال په ترڅ کې په بغلان کې سیلابونه، راغلل چې په سوونو کسان په کې شهیدان شول ، نه پوهېږم چې دا سرلیک به د همدې پېښې سره تړاو لري او که کومه بله خونړۍ پېښه ځکه چې نوموړي شعر کې د سیلاب ذکر نشته ښایي په بغلان ولایت کې د کومې بلې خونړۍ پېښې په اغیز کې لیکل شوی وي.
اټک

## نوی غزل

مور وطن سخت دی ګیله من له شازلمیو څخه
پتمنه غیرته یې ده ډکه له پردیو څخه

خاوند یې مړ کړ نامعلومو پرون نن اختر دی
کونډې جلکۍ لیچې خالي کړې له بنګړیو څخه

د مُغل خیلو په دربار کې سلامي ولاړ دي
خوشحال خټکه ته خبر یې د لمسیو څخه

د وطن پیغلې د وطن په ننګ راووتلې
لکه چې تمې یې شوې لنډې د سړیو څخه

جنګه پیغلوتې دې په سرو لاسونو کونډې کړلې
هجرې د کلي دې خالي کړې له ژنکیو څخه

ای ګیلامنه نور دې مړه قام ته نارې مه وهه
ګیله پکار ده خو پکار ده له ژوندیو څخه

## پېغور

بیا دې په سر د فلسطین کشمیر پېغور واخله
پښتونه ته اول د خپلو ویټو پور واخله

زه به دا ومنم چې تا روس امریکه مات کړي
ته مړه نر شه یو ځل غچ خو د لاهور واخله

په زنده باد و مرده باد که چېرته کار وه نه شو
له سره تېر شه خپلواکي او حق په زور واخله

## رزمک

غږ د خپلواکۍ دې د یاغي باغي رزمکه
زړه د دوښمن ریبي بې له توري او ټوپکه

نور باید دا خپل محکوم وطن له پردو وګټو
ځئ چې یو ځای پاڅو له کابله تر اټکه

ښنکه مو خوښېږي دا بل مخ پسې را واړه وو
دا د لنګ زامن نه سړي کېږي بې کوتکه

## لنډ

عجیبه وخت دی لنډ زمري د دستارونو وهي
تور پنجابیان پښتنې میندې په مخونو وهي

اې ګیلامنه ستا د خاورې دا ظلمي ځوانان به
اخر په کومو سترګو ګوتې په بریتونو وهي

## کشرې

زما په قتل که دا نوره نړۍ چپ ده خیر دی
خو مسلمانه زه خو ستا د کلیمې ورور یم

زما پر لاش به دومره ویر وي چې تویې به باسې
ځکه چې زه د شپږو خویندو کشرې ورور یم

## ولې

ولې د هر شر ذیمه وار یادیږم
کله مُسلِم کله کُفار یادیږم

خدایه چې ستا به فیصله څنګه وي
یو ځای شهید بل ځای مُردار یادیږم

لر او که بر ته سپیناوی ورکړمه
هلته جاسوس دلته غدار یادیږم

نړۍ مې هم په شاباسي غولوي
سهار پاګل ماښام هوښیار یادیږم

که ګیلامان هر څو ځان سپین مُلا کړم
بیا هم په هر ځای ګُنهکار یادیږم

## ياره

شم درنـه ځـار پـه څو څـو واره يـاره
زمـا يـاغي بـاغي غـداره يـاره

د ګـرد افغـان ملـت د سـترګو تـوره
د هـر مظلـوم د زړه قـراره يـاره

پـه څـه خـو مـه شـې زړکلن دې غـوارم
د دې برېـاد وطـن لپـاره يـاره

زه ګـيلا من دې بـې لـه تـا نـه شـمه
زمـونږ سـالاره او غمخـواره يـاره

## بلا

کومه بلا چې مونږ په ټول جهان کې نه غوښتله
هغه بلا وزیرستان ته څنګه ورسیده

په کومه ژبه دې فتوه راکړه کافر دې کړمه
ستا اندازه زما ایمان ته څنګه ورسیده

## څلوریزه

مونږ خو په مینه وروروليٰ په انسانیت میئن یوو
کوو په نوم د افغان ناز پۀ افغانیت مائین یوو

ای ګیلامنه نه یریږو د تهمت له تاپو
هم په اسلام هم په پښتو هم په غیرت میئن یوو

## ملګري دې یوو

چې چا ته تیښته شي سالاره ملګري دې یوو
د ژوندانه په هره لاره ملګري دې یوو

د لروبر افغان ولس یې یو نوی امید
د قام د ښه ژوندون د پاره ملګري دې یوو

که ډېرې سختې تکلیفونه راځي راځي دې
موږ له زندان واخله تر داره ملګري دې یوو

زمونږ وعده وه وعده ده وعده به مو وي
تر خپلې خاورې خپل اختیاره ملګري دې یوو

د جبرائیل په وزر پټ شي په څه خو مه شي
د ګیلامن د زړه قراره ملګري دې یوو

## ته څه وایې

مړه نور غبږ د ازادۍ ښه دي که ته څه وایې ؟
له دې غلام ژوند خو مرګی ښه دی که ته څه وایې؟

چې تیتوم یې لګوم یې د بادار په پښو کې
نو له هغې مې مات تندی ښه دی که ته څه وایې ؟

دا ازغن تار له منځه وړل خو فرض عین دی په مونږ
خو په اټک پوخ دېوالګی ښه دی که ته څه وایې ؟

چې د نجیب غوندې په خپله قیصه کلک ودریږم
او چې په غاړه مې زندی ښه دی که ته څه وایې ؟

چې په دې دومره بد وختونو کې مې هم نشو خپل
نودانیم کښې ورور مې پردی ښه دی که ته څه وایې ؟

ای ګیلامنه په قلم خپل قام وطن وستایه
نور بس ګودر لیلا منګی ښه دی که ته څه وایې ؟

د دواړو حاجت منـدیم یـو مـې زړه دی بـل مـې ځـان دی
که ګران وزیرستان دی او که ګران افغانستان دی

که لـر دی او کـه بـر دی ورونـو یـو پښتونستان دی
یو ننګ یوه پښتو یـو مـو رواج یـو مـو ایمـان دی

خـو نـن پـه اشـارو د بـل خپـل سـر پـه کـاڼو ولـو
لـر بـر پـه کـاڼو ولـو او بـر لـر پـه کـاڼو ولـو

هیڅ فرق مه په کې بولئ پښتون یـو د لـر او بـر دی
که سوات که کابل جان که کندهار که پیښاور دی

چې نوم یې د پښتـون وي زمـا ځـان زمـا ځیګـر دی
چې ژبـه د پښتـو وایي زمـا سترګې او نظـر دی

راځئ پښتنو ورونو چې یو لاس شـو یـو لښـکر شـو
دوښمن ته به شکست ورکړو چې یو ځای لراو بر شو

ترکومې به په خپل منځ کې جنګیږو او ژوبلیږو
چې چېرته اور بل شوی دی نو مونږه پرې سوځیږو

ویده یوو د غفلت په خوب چې کله به ویښیږو
په خوله مونږه تش هسې بس له یو بل نه ځاریږو

چې کوم محفل ته لاړ شي په یو بل پسې غیبت دی
په خوله دعوې د مینې کړو په زړو کې مو نفرت دی

چې زه پښتون یم ته پښتون یې راشه چې یو ځای شو
ټینګ لاس د ورورۍ راکړه را پخلا شه چې یو ځای شو

چې زه شم در ته ګل ته مې بورا شه چې یو ځای شو
که زه وم مرور ته را جرګه شه چې یو ځای شو

تر څو به په ناحقه تویه وو د یو بل وینه
جوړ شوي سوداګر یوو خرڅه وو د یو بل وینه

جهان ورته یو شوی پښتون هر ځای په نمبر مري
لر بر په شمالي په کابل جان په پیښاور مري

د دین په سر بدنام شول په نامه د ترهګر مري
څوک مري په دهماکو څوک په ټوپک څوک په خنجر مري

څوک جوړ ورته کافر کړي څوک طالب شي په سنګر مري
دا ولې یو پښتون د بل د لاسه په ډالر مري

د دین په مدرسو کې مو بچیان سینې پرهر مري
جهان وربورې خاندي پښتانه په سمه غر مري

زما د جوماتـه امام د پاسه په ممبر مري
بس پیغلې ملالې مو دلې دلې په کودر مري

لاسونه د پښتون صباح بیګاه په وینو سره وي
زما ستا په وینو سره وي ستا زما په وینو سره وي

راځۍ چې سره یو شو د جهان قیصې به پرېږدو
بس نور د شخصي ګټې او تاوان قیصې به پرېږدو

یوو وروڼه د پنجاب و فارسي بان قیصې به پرېږدو
چې ګټې لاس ته راوړو نور د زیان قیصې به پرېږدو

چې نوې تاریخ جوړ کړو ته مې وروړ زه به دې وروړ شم
ای ته مې د زړه سر شه زه به ستا د سترګو تور شم

تر څو به د ملنګ پښان په یو بل در ګرځېږي
اخر وایه تر کومې به د مال پښان خرڅېږي

پښتونه لږ خو فکر وکړه ځان ته بریادېږي
راویښ شه دوست دوښمن درته ښکاره شو که پوهېږي

ټوپک یې لاس کې درکړو ما په تا ، تا په ما وژني
تیارې راخوره وي زمونږ په منځ کې رڼا وژني

بیدار شه ای پښتونه لږ د ځان تاریخ تازه کړه
جذبه دې راژوندۍ کړه د ایمان تاریخ تازه کړه

محمود غزنوي د خوشحال خان تاریخ تازه کړه
لږ بیا د میرزاعلي د میرویس خان تاریخ تازه کړه

د وخت دې ظالمانو ته عمر له ځان نه جوړ کړه
د پلار نیکه پشانې بهادر له ځان نه جوړ کړه

ته فکر وکړه ته وله پښتونخوا لمبه لمبه ده
په ځان نه یوو خبر چې مونږه کړې څه خطا ده

هر ځای پښتنه پېغله مهاجره په بېدیا ده
یو خدای رسول منو بل په قران مو عقیده ده

بس ځکه نړېدلې په بارود هره کوڅه ده
زمونږ د پښتنو نه هر ځای ډکه جیل خانه ده

بچیان ترهګر بولي دا په کوم کتاب روا ده
مسلِم یمه زما د ملک نامه خو کلیمه ده

وزیره ګیلامنه دا د کوم جُرم سزا ده
چې فکر ځان ته نه کړې اسدخیله برباد یږې
تر کومې به د بل په اشارو باندې غولیږو

# پښتون مري

هم که لر مري او که بر مري خو پښتون مري
که طالب مري که عسکر مري خو پښتون مري

لویه خدایه د دنیا په مخ چې چېرته
په نامه د ترهګر مري خو پښتون مري

که شهید دی که مردار دی خوار پښتون دی
که مورچل که په سنګر مري خو پښتون مري

چېرته لاړ شو زما ربه حق حیران یوو
که په سمه که په غر مري خو پښتون مري

څوک حلال شول او څوک مري په دهماکو کې
که ټوپک که په خنجر مري خو پښتون مري

ګیلامن اسدخیل دې ته دېر حیران یم
که بې ننګه مري که نر مري خو پښتون مري

## د ننګ میدان

زه پښتنه یم بې ننګي نه قبلوم لالیه
د ننګ میدان ته ځنګ په ځنګ درسره ځم لالیه

د زرغونې انا لمسۍ یم ستا دعا په کار ده
د وخت ملاله یم زلمي راپاروم لالیه

الله دې نه کړي که شهید شولې په ننګ د وطن
په تار د زلفو به کفن درته ګنډم لالیه

یا که تېې شوې ګیله منه خال دې بدم په وینو
بیا به په لپو کې اوبه درته راوړم لالیه

**یادونه :** دا شعر شهید ګیله من د پښتو ژبې تکړه سندرغاړې مېرمن پاولینې ته د زمزمې او سندرې دپاره پخپله لیږلی و چې د ګیله من تر شهادت وروسته اغلې مېرمن پاولینې سندره کړ او د سندرې په بڼه خپور شو .ما ته دا شعر مېرمن پاولینې راولیږه.

ذایقه

یوه داسې ذائقه شته چې هر بنده به یې څکي
بنده هم صرف نه هر یو زنده به یې څکي

د هیچا یې څکلو ته زړه نه کیږي ترخـه ده
لازمـي ده مجبـوري ده خامخـا بـه یـې څکـي

که ننګ که بې ننګي کړې ګیلامنه اسدخیله
په خپل وخت هر یو نر هر یو دلـه بـه یـې څکـي

ژمنه

دا درسره کړې کوم مُلا د جنت ژمّنه ده
دا خو جهاد نه دی اشنا دا خو ورور وژنه ده

دلته يو ګلخان دی د کشمير جنګ ته تَېر وهي
خپله مور يې ناسته په خيمه کښې بې وطنه ده

دا دي بيخي دروغ چې رياست د مور مثال لري
اوف ييا پښتنو ته څنګه خپله مور دوښمنه ده

هر قوت چې وغواړي نو مړيې کړي هم پړيې کړي
توره د پښتون د ترهګر په نوم لمنه ده

ای خلکو قسم دی چې منظور له چا هیڅ نه غواړي
صرف يې د ښه امن خپل اولس لره غوښتنه ده

مونږه را اوچت کړ په دنیا مونږ يې کړو در په در
ای پښتنو دا د شنه او سپين بيرغ مننه ده

ځان په حقه وژني تور ته تور او سپين ته سپين وايي
ځکه زمانه د ګیلامن نه ګیلامنه ده

**یادونه**: ګیله من د ګل خان لفظ هغو پښتنو یا پښتون ته کاره ولو کوم چې د پاکستان أئين او قانون مني او د خپلواکي او د پښتنو واک اختیار مخالف دي او په موجوده ریاست کې د منصب او قدرت خاوندان دي

## دروازې

په جونو مو کړې بندې د مکتبونو دروازې
په تاسو دې شي بندې د جنتونو دروازې

زموږ د خویندو میندو ماشومانو په بد حال
ګـــواه دي د پنجـــاب د زنـــدانونو دروازې

وطن کې بد حالي ده بده ورځ ده وطن داره
موږ پورې په ماښام کړو د کورونو دروازې

جنت وطن یره دی خو په قدر یې پو نه یوو
خدای بندې کړې په موږ د رحمتونو دروازې

مـــزه د کلـــي نشـــته ګیلـــه منـــه اســـد خپله
چې بنـدې کـړې لالـي د دیدنونـه دروازې

## اجل

ولاکــه یـې نــور ومنمــه دا څوکیــدار غــل دی
زمــا فکــر د خوشــحال دی د دې فکــر د مُغــل دی

ایمان به څنګه تېر کړې ته په زېړو ورته ګورې
دا ستا په کلي کور ستا پهٔ عزت یې جوړ غوبل دی

زما فــکر خراب دی که دا وخت دومره بدرنګ دی
چـې کـړی ګـیدړانو پـه زمـرو بانـدې یرغـل دی

ای دا مو د اسلام او د پښتون وطن دوښمن دی
هـم دوی دی نړولـی پېښـور دی کـه کابـل دی

خر هغه دی خو کته یې بدله ده ملګرو
دا مونږ ته پاتې شوی دا ایپي فقیر متل دی

ای راشه دا ټوپک کېږده خپل ورور دې باندې وژني
په خدای که دا جهاد وي دا ټول ما او تا ته چل دی

چې کوم مُلا په چا باندې فتوه د جهاد ورکړه
نن هغه ملاجان هم د هغو د لارې مل دی

دا نن چې ما او تا ته وایي غدار یې شرپسندیې
منم خوله مې د ورور ده خو اواز پکې د بل دی

پروا مه کوه حق ته به حق وایي ګیلامنه
هیڅوک هم نه دی خلاص چې پوره شوی یې اجل دی

# د زندان ګیسه

زه به تر نیمې نیمې شپې ځوړند وم
لاس یو خوا سر بل خوا عجیبه ځوړند وم
د مخ له خوا یې د کرنټونو په تارو وهلم
شاته پر ملا یې په چیتړو او ډنډو وهلم
خو خدای ګواه دې ما په دې حال کې دا شعر ویلو چې
زه عام وجود یم خاوري کېږمه فاني به شمه
خو که په ننګ د وطن مړ شوم قیمتي به شمه
قامي لښکر ته زه له سرا و ماله تېر ورګډ یم
نو په دې نه یم چې په دار یا زنداني به شمه
ما که په ننګ د افغان کلکه توره وتړله
اصلي وارث د خوشال خان او ابدالي به شمه
که مې دستا په شکېدلي وربل ننګ ونه کړ
د وطن پېغلې خپل تاریخ ته تهمتي به شمه
که د بدن وینه مې تویه شوه په حق د مظلوم
نو ګیله منه افتخار د خپل پردي به شمه
په دې کوټه کې یوه د اوسپنې چوکۍ پرته وه

ګیله من وزیر

په دې چوکۍ ګرد چاپېره زولنې پرتې وې
بیا یې پر دغه چوکۍ وتړله سم یې بند کړم
ښخې مې سا اخیستې نه شوه سم محکم یې بند کړم
دغه چوکۍ له لاندې ورو ورو ګرمېده راپسې
بوی به راتلو د تن جامه به سوځېده راپسې
په دې چوکۍ یې لګول د برق د تار شارټونه
د اور لمبې وې راکول به یې بار بار شارټونه
ځینې سزاوې خو په خوله د یادېدلو نه دي
ځینې لمحې د یادېدو بیانېدو نه دي
دوی هڅه کړه زه یې په مارانو لړمو خوړلم
ژوندی انسان وم په ژوندون یې زه په سپو خوړلم
یو بېره ور سړی راتلو چې خوشخبري درکوم
نن به سهار د اذانه په وخت پانسي درکوم
زه به خوشال شومه چې شکر دی چې ژر مړ شمه
چې بې ننګي رانه ونه شي بهادر مړ شمه
بس هره شپه به یې ویل چې نن تیار اوسه
د پانسۍ وخت دې رانږدې شو لو بیدار اوسه

ما تــه بـه مينـه لـور ماشــومه لـور رايـاده شــوله
خــو د وطــن بـه هــره بــوره مــور رايــاده شــوله
ما ويل که مرم شکر په ننګ د مظلومانو مرمه
زه د وطــن پــه کونــډو بــورو يتيمـــانو مرمـــه
چې بـه سـهار پـه ډيکـو بـه يـې روان کړمـه زه
بــس پــه چيتــرو او ډنــډو بــه يــې روان کړمــه زه
سترګې مې بند په زخمي پښو به يې روان کړمه زه
لــه لــږ مــزل نــه پــس عجبــه حادثــه راغللــه
هــر خــوا قبرونــه وو د مــړو هــديره راغللــه
زمـا وه مـخ تـه يـې ډېـر د کـم عمـر ځوانـان ووژل
په يو ساعت کې يې څلور پينځه کسان ووژل
تياريې جوړ و زه لاندې ژور کند ته ګوزار کړم
دې ظالمانو په ژوندونې قبرستان ته ګوز کړم
پاس يې په غاړه په ترلي مخ کسان ولاړ وو
پـه وينـو رنـګ د انســانانو قصـابان ولاړ وو
ځينو په لاسو کې ګيمتې ځينو بېلچې نيولې
ځينــو زمـا پــه ســر تــوپکې تمــانچې نيــولې

ویل یې اوس وایه زموږ کیسه منې او کنه
اخري وارننګ دی دا خپل سر دې ساتې او کنه
خو ما ورغبرګه کړه چې شابسې ګوزار کوئ
ژر ژر مې ووژنئ د څه شي انتظار کوئ
ای که ذره ذره ټوټه ټوټه نیم نیم شمه
افغان پښتون یمه قسمت دی که تسلیم شمه
بس لنډه دا چې دوی پرې پو شول چې یوه نه مني
ای دغه ځوان په هوش خواص زموږ کیسه نه مني
بس یو څو ساعته شوم بېهوشه زما حال بدل شو
زما په ځان اختیار شو ختم زما خیال بدل شو
داسې ماحول جوړ شو چې شو راسره ورور په قید کې
زما ورارہ ماشومه لور او زما مور په قید کې
له یو خوا بل خوا د چیترو اوازونه راتلل
ما ته د ورونو او وربرونو فریادونه راتلل
بس له دې وروسته چې دوی ما باندې هر څه ویلي دي
په دې پو نه یم چې ما بد او که ډېر ښه ویلي دي
پښتنو ورونو دا زما مختصر بیان و

دا په ما تېر په فوجي قید کې د محشر بیان و
خو خدای ګواه چې زما سره دا قران پوره دی
دغه قسم زما په هره یوه میدان پوره دی
په دې اخر وخت کې هم ما د خپل پرهر په وینو
د تور زندان پر دېوال دغه بیت لیکلي دي چې
(که وم ژوندی د ازادۍ د اتڼ برخه به وم
که چېرې مړ ومه نو زیری مې تر ګوره راوړئ)
ځکه چې ما و خپل ولس ته په بار بار ویلي
دا مې په شعر او په ټپه کې دي په جار ویلي
چې یا وطن او یا کفن دا مې شعار دی
پښتانه راویښومه دا مې کار دی
ما قبول دي د حق لار کې په سر سترګو
ګیله منه که زندان دی او که دار دی

یادونه: په لینډی کې پورتني دوه بیتونه د ښاغلي باز خان المیار دي چې د شهید ارمان لوني د قبر پر ډبره هم لیکل شوي دي موږ د کتاب پر شا پر پښتنی هم د همدې خاص ارزښت له مخې لیکلي دي او شهید ګیله من هم دلته په خپل شعر کې رانغاړلي دي

## بغاوت

ما ته چې چا کنځلې وکړلې په ننګه د قام
هغو ته هم ما د یووالي خواست نصیحت کړی دی

دا چې پښتون په کې غلام دی دا بیخي نه منم
ددې نظام نه مې په کلکه بغاوت کړی دی

## پښتانه

پښتانه د پاکستان نه دي صاحبه
پښتانه خو پنجابیان نه دي صاحبه

پښتانه د لر او بر د لوی ټبر دي
پښتانه یو څو کسان نه دي صاحبه

**یادونه :** په دې شعر کې یې اشاره هغو ریاستي پښتنو ته ده چې د پاکستان له زېږېدو راهیسې د پښتنو په نوم د سیاسي ګوندونو مشران یا پلویان دي او د ریاست په هر ظلم یې خوله ګنډلې او خاموش دي .نو دلته ګیله من ریاست ته وایي دغه کسان چې تاسو سره د پښتنو په نوم ناست دي ، یوازې دوی پښتانه ، نه دي بلکې پښتون قام یو ډېر لوی ټبر دی او له آمو تر اباسینه ددې خطې او جغرافیې خاوندان دي.

## مینه

**مجبور به یم خو چې زما په مینه شک ونه کړې**
**لکه مورکۍ لکه پلار جان درسره مینه لرم**

**خلک به هر څه هر څه وایي ته ګوا یې په ما**
**افغانستانه ګیلـه مـانِ درسـره مینـه لـرم**

**یادونه :** دلته بیا هم ګیله من د خپلې لهجې له مخې او د
قافیې د سمون په پار ګیله من ، ګیله مان لیکلی او موږ هم
پرته له لاسوهنې ولیکه .بله لنډه یادونه دا ده چې د پاکستان
ریاست او ادارو تل هڅه کړې او کوي یې چې پښتنه یو په
بل بې باوره او بد نام کړي د غورځنګ په ډېرو مشرانو او
غړو پسې یې همداسې تبلیغ کاوه او کوي یې چې دوی د
نورو هېوادونو کسان او جاسوسان دي یعنې پاکستانیانو ته
یې ویل چې دوی د هند او افغانستان جاسوسان دي او
افغانانو ته یې ذهنیت ورکاوه چې ګوندې دوی پخپله د
پاکستان جاسوسان دي نو دې باریکۍ ته په کتو شهید
ګیله من وایي چې خلک یا دښمنان به هر څه هر څه وایي خو
افغانستان زه په تا مین یم.

## په اور پسې شه

ستا په نه زړه شکرانه په اور پسې شه
تر مطلبه یارانه په اور پسې شه

لوپټه چې د ناموس یې په سر نه وي
مړه داسې پښتانه په اور پسې شه

چې د کیږي همیشه زموږ په وینو
ملکه ستا دا خزانه په اور پسې شه

چې د حق په ځای کې پاتې چوپه خوله شي
دا ملک دا مولانه په اور پسې شه

میخواران چې ترینه وچې شونډې ګرځي
ساقي ستا دا میخانه په اور پسې شه

ګیله منه چې نګار در غخه ولاړو
مړه رنګه شوه دنیه په اور پسې شه

یادونه: په پورته شعر کې شهید ګیله من د خپلې کلیوالې لهجې له مخې د شعر په قافیه کې مولانا د مولانه، دنیا د دنیه په بڼه ویلي او ما هم کټ مټ د هغه د زمزمې نه همداسې ولیکه.

## جنازې

مور به ترڅو پورې د يو بل جنازې اخلو
په پښتونخوا وطن کې هره ورځ لاسونه وینو

کله د پلار کله د مور مات اندامونه وینو
له هرې خوا د یتیمانو فریادونه راځي

د اخ ورور جانه اخ پلار جانه اوازونه راځي
د هر یو کلي نه د مړو اعلانونه راځي

د لراو بر افغان وطن نه ماتمونه راځي
د لوبو وخت کې وي معذور به شي بچیان د وطن

ورته بمونه خښوي څوکیداران د وطن
زموږ په غوښو يې ماړه کړل سپي لېوان د وطن

خو بیا مو هم په یوه خوله نشول مشران د وطن
زموږ خو پېغلې د بابا په کورو کونډې شي

په یو بل کلي کې خیرات غواړي برینډې شي
له حیا ډکې پښتنې پېغلې سر تورې شوې

ځکه اکثره خویندې میندې مو مړې بورې، شي
په یو بل کلي کې په خیرات غوښتو مجبورې شي

د سر سړي مو شول حلال د جاسوسانو په نوم
مشران مو مړه شول د غدارو کافرانو په نوم

څوک ترهګر څوک یې کړه مړه د بدمعاشانو په نوم
ځینې ځوانان مو په پنجرو کې د زندان بندي دي

د پښتونخوا مې په زرګونو انسانان بندي دي
څوک یې ژوندي په امریکا په برطانیا خرڅ کړل

تپوس یې وکړئ جرنیلانو برملا خرڅ کړل
کلي کورونه راته ړنګ کړل پنجاب

تول تاریخي ښوونځي ځایونه راته ړنګ کړل پنجاب
ښوونځي مدرسې او مکتبونه راته ړنګ کړل پنجاب

ګرده نړۍ کې یې په نوم د ترهګر بدنام کړو
استاد شاګرد ملا عامي او هم یې ډم سره بدنام کړو

زموږ په وینو یې خپل ځان ته بلډنګونه جوړ کړل
ځان ته ګوز په تور لاهور کې محلونه جوړ کړل

درې اویا کاله شول پښتون نه یې غلام جوړ کړی
د منډیې د خرڅ لیلام له پښتون جوړ کړی

موږه یې تش د ملک په نوم په لا الا غلط یوو
ډېر پښتانه یې په دا شنه سپینه جنډه غلط یوو

څوک یې په پاک سر زمین او دا دا غلط یوو
په دا دوه مخي ریاست موږ په بیا بیا غلط، یوو

نو نور خو بس دی پښتنو ځانونه وپیژنئ
ای میړنو ای ننګیالو ځانونه وپیژنئ

ای د غفلت په خوب ویدو ځانونه وپیژنئ
د تور دښمن د دې دومخي پالیسی په خلاف

راځئ چې یو شو د بنده د بنده ګی په خلاف
ددې دښمن ددې دښمني معاملې په خلاف

موږه او تاسو باندې کلک سپین بغاوت فرض دی
په دې محکوم وطن کې غږ د افغانیت فرض دی

په لر او بر وطن کې ټینګ ملي وحدت فرض دی
دا کار په موږ لکه پینځه وخت عبادت فرض دی

دې غـلام ابنـې غـلام نـه ازادي اخلـو
راځئ د سـر پـه قربـانۍ نـن خپلـواکي اخلـو

د غلامۍ له ژونده سل ځلې بهتر دی مرګی
د ازادۍ د ننګ په کار کې معتبر دی مرګی

راځئ دې کار ته اول خپله ګیله من تیار دی
سبا تـه هـم نـه ایسـاریږم دا دی نـن تیـاریـم

تاسو هم دې کار ته د ننګ په پړي ملا وتړئ
صرف په خوله نه نغدې نغدې ارادې وتړئ

ځئ په لاسو کې د خپلواک وطن جنډې اخلو
موږ بـه ترخـو پـورې د یـو بـل جنـازې اخلـو

موږ بـه ترخـو پـورې د یـو بـل جنـازې اخلـو
موږ بـه ترخـو پـورې د یـو بـل جنـازې اخلـو

## لوی افغانستان

وجود مې لوی افغانستان دی د مثال په توګه
زړه په کې پروت ملت افغان دی د مثال په توګه

دې ظالمانو په اغزنو کرښو نیم کړی دی
بیا یې په ډېر وحشت په لر او بر تقسیم کړی دی

چې د دې نیم زړه یو کېدو ته څه اقدام ونه کړو
دا خو معلومه ده چې ژوند به په ارام ونه کړو

چې وي موجود دا د تورخم تور زنځیرونه ترڅو
چې مو تر منځ وي د ډیورنډ شینکي تارونه ترڅو

نو بیا بېښې په لر او بر امن د خدای قسم دی
په کابل جان په پېښور امن د خدای قسم دی

تاسو حساب وکړئ چې څومره ځوربېدلي یوو موږ
د دې بېلتون دلاسه څومره دردېدلي یوو موږ

موږ سکه ورونه یوو دښمن سره ویشلي یوو موږ
بیا یې په سل قسمه نومونو غولولي یوو موږ

له پښتونخوا چې څوک جنت حورو غلمان ته لیږي
بیا یې ټوپک په لاس لوی کور افغانستان ته لیږي

موږ که سوځېږو که ژوبلیږو خو د دوی د لاسه
په لر او بر کې وژل کیږو خو د دوی دلاسه

دا چې له هر کړنګه ولیږو خو د دوی دلاسه
دا چې په وینو کې لوغړېږو خو د دوی دلاسه

منځ کې بېلتون دی وروور د وروور له حاله نه خبرېږي
پلار یې د زوی مور یې د لور له حاله نه خبرېږي

نور نه تارونه منم نه یې دا پاټک منمه
نه د چا توره زوراو نه د چا ټوپک منمه

نه یې معاهده د ډیورنډ نه یې ګندمک منمه
نه یې زنځیر په تورخم نه یې په سپین بولدک منمه

فقط یو لوی کور له کابله تر اټک منمه
دا خو په زور چا شوکولی له خپل ځان یمه زه

کنه که دلته یم که هلته یو افغان یمه زه
وزیرستان سوات پکتیکا کې مې اورونه بل دي

په لر او بره پښتونخوا کې مې اورونه بل دي
د دې اورونو مړ کېدو ته یو کېدل په کار دي

ددې اغزنو کرښو نور له منځه وړل په کار دي
پښتنو څو مو چې دا وران وطن ګټلی نه وي

چې مو ترڅو دښمن ته زور د متې ښودلی نه وي
څو مو چې دا د وطن زوړ پرهر ګنډلی نه وي

چې مو ترڅو په اټک بند دېوال وهلی نه وي
ای ګیله منه تر هغې په موږ سیالي قسم دی
په افغانانو سوله امن خوشالي قسم ده

**لاسونه**

دا چې لاشونه يې کش کيږي په روډونو باندې
ای نړۍ والو دا مظلومه انسانان نه وينې

ای ملايانو په برما په فلسطين ژاړئ خو
دا په چمن کې سره په وينو مسلمان نه وينې

ای پښتنو سياست والو ولې غلي ناست يئ
دا ناروا وې د خدای داد يې پاکستان نه وينې

**يو سړی**

هم د لر دی هم د بر دی يو سړی
ما ته ډېر زيات معتبر دی يو سړی

د افغان ملت په ننګ باندې ولاړ دی
د منظور پشتون عسکر دی يو سړی

## سر

په خپله خاوره د پردیو زور او شر نه منم
له خدایه پرته هیڅ د سر دپاسه سر نه منم

چې پښتونخوا په کې برباده وي پنجاب اباد وي
داسې دوه مخې پاکستان په عمر بر نه منم

## ویزه

په خپل وطن کې دې ویزه پاسپورټ ښخي نه منم
ته تذکره نه منې زه دې شناختي نه منم

ته چې زموږ ملي رهبر منظور پشتین نه منې
زه دې قاید اعظم علامه اقبال یو چودري نه منم

## چمن

خان ملک ملا خاموش دي دا کوم ننګ دی دا کوم دین دی
د چمن څڅه جوړ شوی هم برما هم فلسطین دی

د کشمیر په ننګ دې ډېرې چغې وکړلې پښتونه
نن دې وار دی ستا سکه وړور په وینو کې رنګین دی

یادونه دا څلوریزه یې د چمن غیرتي ولس د هغه اعتراض په هکله ویلې ده چې د چمن ولس له اتو میاشتو راهیسې پرلت وهلی او د پاکستان د حکومت هغه پرېکړه نه مني چې وایي په چمن دې افغانستان ته تګ راتګ په ویزه او پاسپورټ شي .دا اعتراض میاشتو میاشتو ته اوږد شو او په دې دوران کې د پښتنو ټول سیاسي قومي او مذهبي ګوندونه چپ پاتې شول او د حکومت له خوا د پرلت د ختمول په خاطر څو څو وارې په اعتراض کوونکو ظلم زور وشو او ډېر کسان په کې شهیدان هم شول.

## يوره

راشه ويده دې کړم په سپين سپين مړوندونه ياره
ډير به دې کړي وي په سره رمل خوبونه ياره

ډيري شپې ورځې دې کړې تيرې واخ اى
چې درته جوړ کړمه د زلفو بالښتونه ياره

شونډې دې وچې دي پاسته لاس دې تغمې تغمې دي
زما نازکه ياره و زما نيازبينه ياره

په تسلي مې ښکلوه په دا نازک اننګي
چې رنګ مې نه کړې د لنډۍ زنې خالونه ياره

دومره دوه درې کاله دې ځنګه تېرول په سفر
په ما خو سور اور وي له تا بېغير وختونه ياره

ته راتــه غلــی شــه لالیــه زړه مــې ډک دی درتــه
چــې درتــه ووایــم د ســوي زړه حالونــه یــاره

وګیلــه منــه ســر مــې کېــږده د زلفــو پــه بالښــت
زه بــه ځــار ځــار کــړم تــه وایــه راتــه شــعرونه یــاره

یادونه  ددغه شعر په کره والي کې اغلې مېرمن نوشابې اشنا او ښاغلي عاشق الله فریاد مرسته کړې ده

رمل په عربي کې شکو ته وایي او ددې شعر له داستانه د ګیله من د مسافرۍ ستړی او په سرو شګو کې د مزدورۍ سخت ژوند ښه اټکلولای
متر

## يوره

روڅه چې ويود دې کم په سپين سپين مرمند ينه يوره
ډير وو دې کړي وي په سرۀ رامل خوبينه يوره

ډيرې شپې وريځې وو دې تيرې وي شوګيرې وخاځ
چې ديرتا جوړ کمه دې زلفې بولشتينه يوره

شونډې دې وچې دي پوستۀ لوس دې دوغمې دوغمې دي
دې مو نوزکه يوره وه دې مو نيازبينه يوره

په تسالي مې کوشالاوه په دا نوزک انګې
چې ړانګ مې نهٔ کښې دې لنډې زنيې خولینه یوره

دامره دوه درې کوله دې څرګې تیراول په سَفر
پهٔ مو خو سیر یور وي دې تو بغیر واختینه یوره

تهٔ روتا غلائ شه لالیه زړهٔ مې ډاک دائ دیرتا
چې دیرتا اویائم دې سوي زړهٔ وولینه یوره

وه ګیلامنه سر مې کشیده دې زلفان پهٔ بولشت
زهٔ وو څار څار کهٔ او تهٔ ویا یه ارتا شعرینه یوره

## شعر

د غلامۍ لـه ژونـده سـل ځلـې بهتـر دی مرګـی
د ازادۍ د ننګ پـه لار کـې معتبـر دی مرګـی

راځـئ دې کـار تـه اول خپلـه ګیله مـن تیـار دی
سبا تـه هـم نـه ایسـارېږم دا دی نـن تیـار یـم

تاسـې هـم دې کـار تـه د ننګ پـه پـړي مـلا وتـړئ
صـرف پـه خولـه نـه نغـدې نغـدې ارادې وتـړئ

ځـئ پـه لاسـو کـې د خپلـواک وطـن جنډې اخلـو
مـوږ بـه ترڅـو پـورې د یـو بـل جنـازې اخلـو

## بغاوت

ما ته چې چا کنځلې وکړلې په ننګه د قام
هغو ته هم ما د یووالي خواست نصیحت کړی دی

دا چې پښتون په کې غلام دی دا بېخي نه منم
ددې نظام نه مې په کلکه بغاوت کړی دی

## پښتانه

پښتانه د پاکستان نه دي صاحبه
پښتانه خو پنجابیان نه دي صاحبه

پښتانه د لر او بر د لوی ټبر دي
پښتانه یو څو کسان نه دي صاحبه

یادونه: په دې شعر کې یې اشاره هغو ریاستي پښتنو ته ده چې د پاکستان له زېږېدو راهیسې د پښتنو په نوم د سیاسي ګوندونو مشران یا پلویان دي او د ریاست په هر ظلم یې خوله ګنډلې او خاموش دي نو دلته ګیله من ریاست ته وایي دغه کسان چې تاسو سره د پښتنو په نوم ناست دي - یوازې دوی پښتانه . نه دي بلکې پښتون قام یو د بر لوی ټبر دی او له امو تر اباسینه ددې خطې او جغرافیې خاوندان دي

مینه

مجبور به یم خو چې زما په مینه شک ونه کړې
لکه مورکۍ لکه پلار جان درسره مینه لرم

خلک به هر څه هر څه وايي ته ګوا يې په ما
افغانستانه ګيلــه مــان درســره مینــه لــرم

یادونه دلته بیا هم ګیله من د خپلې لهجې له مخې او د قافیې د سمون په پار ګیله من . ګیله مان لیکلی او مور هم پته له لاسوهنې ولیکه بله لنډه یادونه دا ده چې د پاکستان ریاست او ادارو تل هڅه کړې او کوي یې چې پښتانه یو په بل بې باوره او بد نام کړي د غورځنګ په ډېرو مشرانو او غړو پسې یې همداسې تبلیغ کاوه، کوي یې چې دوی د نورو هېوادونو کسان او جاسوسان دي یعنې پاکستانیانو ته یې ویل چې دوی د هند او افغانستان جاسوسان دي اافغانانو ته یې ذهنیت ورکاوه چې ګوندې دوی پخپله د پاکستان جسوسان دي نو دې باریکۍ ته په کتو شهید ګیله من وايي چې خلک دښمنان به هر څه هر څه وايي خو افغانستان زه په تا مین یم

## په اور بسې شه

ستا په نه زړه شکرانه په اور پسې شه
تر مطلبه یارانه په اور پسې شه

لوپټه چې د ناموس یې په سر نه وي
ړه داسې پښتانه په اور پسې شه

چې د کیږي همېشه زموږ په وینو
ملکه ستا دا خزانه په اور پسې شه

چې د حق په ځای کې پاتې چوپه خوله شي
دا ملکدا مولانه په اور پسې شه

میخوارا! چې ترینه وچې شونډې ګرځي
ساقي ستا دا میخانه په اور پسې شه

ګیله نه چې نګار در څخه ولاړو
مړه رڼله شوه دنیه په اور پسې شه

یادونه: په پورته شعر کې شهید ګیله من د خپلې کلیوالې لهجې له
مخې د شعر قافیه کې مولانا د مولانه ، دنیا د دنیه په بڼه ویلی او
ما هم کټ مټ هغه د زمزمې نه همداسې ولیکه.

## قام سره

په ژوند هم د خپل قام یم هم به مرم د قام سره
تر هر سنګر تر هر ډګر به ځم د قام سره

چا ته به سر ټیټ نه کړم نه خرڅ او نه به ډار شمه
وعده مې ده په قران لاسونه ږدم د قام سره

او نه مې په زندان او دار هیڅوک تم کوی نه شي
بېخي بې اندازې مینه لرم د قام سره

په هره خوشالۍ د قام د زړه نه خوشالېږم
بس خدای ګوا شریک یم په هر غم د قام سره

وزیره ګیله منه د افغان په نوم دې مړ شم
د مرګ پس چې یادېږم چم په چم د قام سره

## قسم

قسم په خدای تا لکه ځان لکه ایمان ګرانه وم
قسم په خدای تا لکه لوی افغانستان منمه

او چې زما وطن ته بد امني راوړي جنګونه راوړي
نه سعودي منمه نه داسې پاکستان منمه

## ګل خان

چې د مار نه زهر اوباسي ماهي شي
د پښتون نه چې ننګ اوباسې ګل خان شي

څوک چې سر لکه منظور په وطن شیندي
نو هغه سړی د ټول ولس جانان شي

## جانان

د جانان مثال د درې رنګه بیرغ دی
تورې سترګې شینکی خال سره یې لبان دي

له دې سرې خولۍ دې واره صدقه شه
هغه ټول چې غلامان د پاکستان دي

## ټپېزه

په وطن هر سړی دردیږي
سړی خو یو ځلې مړ کیږي
خو په خپل قام دې قربانیږي
ښځه په هر سړي کونډیږي
سړی هغه دی چې پرې خاوره کونډه شینه



ملت مې لر او بر افغان دی
په قام وطن مې ځان قربان دی
خیر که په برخه مې زندان دی
سپین مخ دې لوی افغانستان دی
دا تورې زلفې دې بیرغ باد رپوینه



زما ارمانه خدای دې جوړ کړه
رنځور جانانه خدای دې جوړ کړه
مرم بې له تا نه خدای دې جوړ کړه
افغانستانه خدای دې جوړ کړه
چې هر پښتون درته پرانیستې تنې دینه



په یار مې سختې نه لوریږي
خو په خپل قام مې زړه بدیږي
که لالی مري که بندي کیږي
که تور وریل مې میراتیږي
په وطن جنګ دی جانان نه ایسارومه



قام کې بې ننګه خلک کم شه
زموږ د دښمن په کور ماتم شه
د پښتنو دښمنه سم شه
په تا مې بیا خولګۍ قسم شه
په وطن ننګ وتا په کور کول خوبونه



د ګلـــو ښـــا ریـــې بختـــوره
خـدای خـو دې مـه کـړه د نظـره
زمـــا زړګـــی زمـــا ځیګـــره
ځکـــه ښـايـســـتـه يـــې پیښـــوره
چـې لـــه کابلـــه مـــرور درتـــه راځینـــه



پـه جـار نعرې د لـړاو بـر کـړه
يـو کابـل جـان بـل پيښـور کـړه
ځـان انقـلاب تـه برابـر کـړه
تـه د منظـور خـولې پـه سـر کـړه
زمـا بـه ملـي ييـرغ پـه سـر وي دربـه شـمه



د ګيلـــه مـــن وزيـــر جانانـــه
زخمــــي زخمــــي وزيرســـتانه
نـــور شـــې ازاد لـــه دې بـــلا نـــه
راجـوړ شـې لـوی افغانسـتانه
چـې روژه مـات مـو د کابـل پـه اذان شـينه

خیر اوس کـه بـد شـي او کـه ښـه شـي
د قــام پــه ننـګ دې هــر څــه وشــي
څوک دې قید یان شي څوک دې مړه شي
رهبــره وار دې خطــا نــه شــي
تــر شــا دې پیغلــې پښــتنې ولاړې دینــه

که کلک پښتون شوې کلک افغان شوې
د پښــتنو ســره روان شــوې
نــو زمــا ځــان زمــا جانــان شــوې
کــه د وطــن پــه نــوم قربــان شــوې
پــه تــار د زلفــو بــه کفــن درتــه ګنډمــه

هغه خپلواک ژوند مو ګنډېر شو
په وطن بیا مغـل چاپیر شـو
د پلار نیکه تاریخ مو هیر شـو
وار د نجیب د پکړۍ تیـر شـو
نــور پکتیــاوال دې پکـړۍ نــه پــه ســره وینــه

زمــا جانانــه خفــه نــه شــې
زمــوږ ګلســتانه خفــه نــه شــې
لــه ځانــه ګرانــه خفــه نــه شــې
وزیرســتانه خفــه نــه شــې
د میــرزا علــي بابــا بچیــان بــه دې ګټینــه

لــه ســتنې ووتلــې تــاره
پــه مــلا مــات شــوی یــې چنــاره
څــومره مــې وکــړې انتظــاره
تــه چــې راځــې لــه کنــدهاره
زه بــه چــمــن تــه لــه چمبیــل ســره درځمــه

دا مــې یقیــن دا مــې ایمــان دی
هــدف مــې لــوی افغانســتان دی
زمــا تــرې ســر او مــال قربــان دی
یــار لــه کابلــه راروان دی
مــا پــه تــورخم ورتــه نیــولي دي ګلونــه

په پښتو جنګ دی پاتې نه شي

قومي غورځنګ دی پاتې نه شي

ژوند مو بدرنګ پاتې نه شي

په وطن ننګ دی پاتې نه شي

زغملی نه شم د همځولو پېغورونه



زما اوستا تر منځه خندې دی

ځکه د دواړو ژوندون شنډې دی

زړه مې د تورو وینو ډنډې دی

پوزه دې کرښه د ډیورنډ ده

سره اننګي دې لر او بر افغانان دینه



ستا په بېلتون دومره غمجن یمه چې حد نه لري
په غمجن زړه داسې خوږمن یمه چې حد نه لري

په کرغېړنو او اغزنو کرښو بېله یاره
دومره دې تږی د دیدن یمه چې حد نه لري

کله ترهګر شمه او کله مهاجر او
دومره ذلیل په خپل وطن یمه چې حد نه

د پښتنو په قتل عام خاموش ملک او ملا
له تاسې دومره ګیله من یمه چې حد نه لري

که یې په مینه کې په دار هم شم پروا نه لري
په پښتون قام داسې مئین یمه چې حد نه لري

د باچا خان امر ماتېږي کنه خدای ګواه دی
نور دومره تنګ له دې دښمن یمه چې حد نه لري

د پښتنو حیا لوټېږي او زه چپ خوله ناست یم
زه ګیله من دومره ډارن یمه چې حد نه لري